دَ کتاب نوم ------------- چاربېته

ليکوال ------------- شيرين يار يوسفزے

دَ خپرېدو کال ------------- 2011

کمپوزنګ او ټائټل --------- خيام يوسفزے



دَ مونډلو درکونه

Shereenyar@hotmail.com

WWW.PUKHTO.NET



# تړون

دَ زروبۍ (مُنارۍ) کلي دَ **فضل احمد آخون (ترکاڼ)**
پۀ نُوم چې دَ خدايي خدمتګار تحريک يو کلک سپاهي
وو ، دَ اولسي او ادبي دواړه ډوله شاعرۍ يو منلے هُنر کار وو -
دَ معياري چاربېتو او اعلیٰ غزلونو دا خالق پۀ پښتو ژبه
او پُښتون قام ډېر حق لري. دَ يو پُښتون ؤګړي او دَ پښتو
ژبې دَ يو مئين ليکوال پۀ حېث زۀ دَ دغه تړون او خراج
پۀ اړه دَ خپلې غاړې خلاصولو هڅه کوُم -
روح دې ئې ښاد وي-
( آمين )

شيرين يار يوسفزے

# دَ شعر او چاربېتې په اړه څوبنيادي او ضروري خبرې

( دليک ورومبۍ برخه )

پښتو ادب کښې په بنيادي توګه (Primary roots) ډېر کار پروت دے .زمونږ اکثر ليکوالان دَ روند تقليد په ذريعه دَ شهرت په نشه کښې په مخه مخه ځي خو بنيادي کار ته نۀ ګوري. چې ګڼه اړوې نو لاندې ترې يو شاعر را اوځي. خوکوم چې د شعر تېکنيکي لوازمات دي ، محاسن دي او دَ ژبې کوم حق دے نو هغه دَ سره څوک پېژني هم نه. زمونږه مشرانو چې کومه هنري پنګه مونږ ته پرېښې ده نو د نن لېکوال او محقق دا نۀ شي بيانولے چې دا کار ئې څنګه او په کوم هنر کړے دے. مونږ له دغه لړ کښې کار پکار دے خو بيا هم احتياط ډېر ضروري دے هسې د خبرې نه خبره جوړول هيڅ دَ فائدې کار نۀ دے .لړ کار دې وي خو په صحيح بنياد دې صحيح سمت باندې تګ وي ، يو غېر ضروري خبره به مونږ د ځاى نه کوم ځاى ته بوځي. دغه لړ کښې ما دَ خپلې برخې کار کړے دے ، د مقديمينو دَ ټول کلام دَ کتنې نه وروستو او دَ پښتو ژبې د مزاج دَ پوره جائزې نه پس ته چې زۀ څومره رسېدلے يم او کوم دريافت مخې ته راغلے نو دَ هغې په رڼا کښې تاسو سره دا څو خبرې شريکوُم .

چاربېته هر کله چې شعر يعنې نظم دے نو تر ټولو اول به په دغه څۀ خبره اوکړم چې مونږ څخه پښتو کښې شعر منظوم دے ، کۀ نور چا څخه آزاد وي نو وي به ، خو مونږ څخه پابند دے او مونږ څخه د منظوم شعر تر ټولو قديمه نمونه د ټپې په شکل کښې وجود لري ټپه آزاد شعر نۀ دے بلکه دا منظوم شعر دے ، دغه وجه ده چې مونږ څخه د شعر نه مراد هم منظوم شعر وي. د ټپې يوه مصرعه د 9 سېلابونو او دوېمه مصرعه دَ 13 سېلابونو وي او په هر څلور سېلابونو کښې څلورم سېلاب دروند وي يعنې دا په څلورم وزن کښې ده. په ټپه کښې يو قسم له د قافيې خپل يو نظام هم شته ، چې د دويمې مصرعې آخري لفظ کښې د "ه" او "ن ه" توري زيا تولے شي .

# دَ شعر او چاربېتې پهٔ اړه څو بنيادي او ضروري خبرې

لکه شينه ، ورينه ، راڅينه ، يمه ، څمه وغيره وغيره .
يعنې پهٔ ټپه کښې د بحر ، وزن او يو خاص قسم له قافيه هم شته او دَ پابند نظم لهٔ پاره صرف بحر او وزن هم کافي دے ، دلته دَ ټپې دَ 9 او 13 چپو مصرعې مونږ ته دا اشاره هم راکوي چې مونږه د نظم يو صنف پهٔ دوه بحرونو کښې هم ليکلے شو او خاص دا چې وزن او بحر جُدا شے دے .
دَ پښتو د شعر يا نظم خپل مزاج او نظام مونږ څانته رابلي . نورو ژبو کښې چې بحر او وزن سره يو شوي يا خلط ملط شوي نو دا پهٔ دې وجه شوې دي چې هلته د بحرونو او وزنونو کار دَ مقرر لفظونو پهٔ ذريعه سر ته رسولے شي ، خو پښتو کښې دغه څه نشته او مونږه د شعر د مصرعو بحر دَ حرکتونو دَ شمېر پهٔ حساب ټاکو او پېژنو ،دغه ځاى دا خبره هېڅ ابهام نهٔ لري چې دا صرف او صرف بحر دے او وزن نهٔ دے .
د سېلابونو يا حرکتونو شمېر نه مونږ ته دَ يو شعر دَ وزن هېڅ پته نهٔ لګي . يعنې دا صرف ناپ دے او تول جدا شے دے . نو پهٔ دغه وجه دا دواړه رکنونه جُدا جُدا ګڼل ضروري دي او بيا پهٔ دې باندې هم ځان پوهه کول غواړي . پهٔ بحر کښې مونږه صرف حرکتونه شمارو چې دَ دوه مصرعو سېلابونه يا مطلعې سره دَ نورو شعرونو او مصرعو حرکتونه پهٔ شمېر کښې يو هومره وي نو بحر پوره يا برابر وي خو اکثر د يو شمېر سېلابونو مصرعې او شعرونه هم دَ يو بل نه پهٔ وزن کښې جُدا وي ، نو څکه وايم چې وزن جُدا رکن دے . مونږه چې کله لفظونه لوَلو خبرې کوو نو دَ لفظونو پهٔ څهٔ حرکتونو زور آچوو ، او څهٔ حرکتونه بې زوره ادا کوو دغه زور والا حرکتونه درانهٔ سېلابونه دي او دا بې زوره حرکتونه سپک سېلابونه دي او شعر کښې د دغه سېلابونو ځاى او ترتيب دَ شعر وزن جوړوي يوه مصرعه کښې چې کوم شمېر حرکت باندې زور وي يعنې دروند سېلاب وي نو بله مصرعه کښې به هم دغه ځاى دروند سېلاب وي خو شعر ته چې دا لفظونه لاړ شي نو دَ شعر بيا خپل يو مزاج او نظام هم دے .

# دَ شعر او چاربېتي په اړه څوبنيادي او ضروري خبرې

يعنې شعر ته چې لفظونه يو خاص ترتيب سره لاړ شي نو بيا دغه عام دروند سېلاب زيات دروند شي ، يعنې دا زور په غټ زور کښې بدل شي ، دې ته Mega Stress وئېلے شي او هر څلورحرکتونه يا هر پينځه حرکتونه کښې صرف او صرف يو دروند سېلاب پاتې شي ، دې نه علاوه دَ لفظ دَ نورو عامو درنو سېلابونو کردار ختم شي. دَ تقطيع دَ پاره به مونږ رباعي کښې د 5 سېلابونو يو سيټ جوړوو او نور صنفونو کښې به دَ څلور څلور سېلابونو سيټ جوړوو ، د 6 سېلابونو او 7 سېلابونه سيټ هم جوړېدے شي او څهٔ پخوانو شاعرانو يو ځاى نيم دا تجربه کړې ده خو صحيح د څلورو او پينځه سېلابونو سيټ دے ، پهٔ وړومبي سيټ کښې چې د يو شعر يا مصرعې دَ پاره پهٔ کوم نمبر سېلاب زور وي يعنې دروند سېلاب وي نو وروسته نور سيټونو کښې به هم دغه نمبر سېلاب دروند وي. دلته دا يوه خبره ده چې آخري سيټ نيمګړے هم راتلے شي ( غزل او عام نظم کښې کم نه کم دوه او چاربېته کښې يو سېلاب نيمګړے راتلے شي) او هلته که د نېمګړتيا پهٔ وجه دروند سېلاب رانه شي نو دا خبر دے ، وزن ئې برابر وي- مونږ ته د دغې طريقې نه د شعر د وزن پته لګي ، دا طريقه پهٔ انګرېزۍ ژبه کښې هم ده او زمونږه يو لېکوال ورور درويش دراني صېب پهٔ دې کتاب هم ليکلے دے او هغو صرف پهٔ دا بحرونو او دا زور والا سېلاب خبره کړې ده وزن او بحر ئې بيا هم خلط ملط پرېښودي دے .
او وزنونه ئې نهٔ دي بيَل کړي او د تارونو دا ګُنجۍهم هغسې انجل بنجل پاتې شوې نو دا تول کار ما سر ته رسوَلے دے او پهٔ صحيح بنيادونو لاړ يم وزنونه مې معلوم کړي دي ، چې پښتو کښې صرف او صرف څلور وزنونه دي وزن او بحر مې خپله کښې جُدا کړي دي ، نوره مې پهٔ قافيه ، رديف او د شعر پهٔ رواني هم پوره خبره کړې ده ، کتاب راروان دے ، دلته يو سوال دا دے چې دا څلور وزنونه کوم کوم دي نو دا جواب ډېر آسان دے ، يعنې دغه سيټونو کښې چې کوم سېلاب دروند وي وړومبے ، دوېم ، درېم يا څلورم نو دا به د شعر د وزن نوم هم وي کهٔ وړومبے سېلاب دروند وي نو دې ته به وړومبے وزن وايو ، کهٔ دوېم دروند وي نو دے ته به دوېم وزن وايو.

# دَ شعر او چاربېتي په اړه څو بنيادي او ضروري خبرې

او هم دغسې چې سيټ کښې درېم او څلورم سېلاب دروند وي نو دې ته به درېــم او څلورم وزن وايو ، په رباعي کښې ما د پښتو د خپل مزاج سره سم يو لار وېستې ده او دا سيټ د 5 سېلابونو جوړوم او د 10سېلابو مصرعې په دوه ټوټو کښــې راځي خو دلته دا خبره اوکړم چې وزن به دلته هم صرف څلورم وي . پښتو کښې پينځم سېلاب ته زور نشي منتقل کېدے . دا غټه نکته ده نو په دا سوب باندې پښتــو کښــې صرف څلور وزنونه دي ، او بحرونه زيات دي څۀ دولس جوړېږي ټول ، خو چاربېتې او ټپې نه علاوه د بل صنف بحر په 9 او 13 سېلابونو کښې نشته ، کوم غزلونه چې په 13 سېلابونو کښې ګڼلے شي ، نو دا په اصل کښې د 14 سېلابونــو وي ، څکه چې دغه غزلونو کښې اخري ، دروند سېلاب باندې نــور هم زور دے ، دغه زيــات زور او طُول بيا يوه چپه زياتوي يعنې د يوې چپې کمے پـــوره کوي، او دغه غزلونو کښې شعرونو اوله مصرعه پخه د 14سېلابونو وي نو 7 -8 -10 -11 -12 -14 -15 -16 سېلابونو شعرونو عام دي ، په دا کښې د 7 - 8 سېلابونو بحرونو ته لنډ بحرونه او د 10 - 11 - 12 سېلابونو بحرونو ته درميانه او د 14 - 15 - 16 سېلابونو بحرونه ته اوږده بحرونه هم وائي .

او بحر ، وزن ورسره قافيه او رديف وغېره د شعر تکنيکي لوازمات دي ، دې پســې بيا محاسن راځي او هغې لۀ پاره مونږ څخه علم بديع شته ، دې نه وروستو دريم نمبر باندې خيال راځي ، څلورم بيا نظريه ، فلسفه يا عقيده وغېره هم دي خو دا دَ شعــر ضرورت نۀ دے ، البته د يو خاص هنر او طريقې سره دَ شعــر اهميت سيوا کوي خو شعر ډېر خوند په خيال کوي ، او شعرته دَ نظريې او فلسفــې ضرورت نشته، خـو دَ آهنګ خبره صرف د قافيې سره تعلق لري او يا بيا د شعر په محاسنو کښې د علم بديع سره يعنې صنعت تجنيس سره. دا د هېئت سره تعلق نۀ لري ، پۀ صوتي ترکيبونو يا ښکلا خو د شعر صنف او هئيت نۀ بدلېږي نوځکه د شعر هئيت جُدا کار دے.

# دَ شعر او چاربېتې په اړه څو بنیادي او ضروري خبرې

اوس کۀ موسيقي والا د شعر يو صنف يا د هغې يو بحر او وزن ته د خپل ميدان يا ضرورت لۀ مخه خپل څۀ نوم ورکوي نو دا جُدا مسئله ده.
تر کومې چې د چاربيتې خبره ده ، نو چاربيته د نظم يو صنف دے. دَ پښتو اولسي ادب کښې مقبول عام صنف دے ، دې نه علاوه کۀ مونږ د شعر پۀ هغه درې ، څلور لوازماتي حوالو نظر اوکړو، نو د تکنيک پۀ حواله سره هم دا يو باقاعده نظام لري ، دَ محاسنو پۀ اړه هم دې کښې ډېر څۀ شته ، او دَ خيال پۀ نسبت هم پوره آب و تاب لري چاربيته کښې دَ خيال درې واړه غټې قسمونه مبتکر خيال مصور خيال ، مفسر خيال پۀ نظر راځي ، دغه صنف ته صرف او صرف اولسي شاعرانو توجه ورکړې ده ، کۀ چرې دې ته (لکه د احمد دين طالب) عالمانو او پوهانو شاعرانو هم څۀ پام کړے وے ، او دَ خپلې برخې کارئې ورکښې کړے وے نو دا به نن پۀ يو بل مقام وه ،او ځاى پۀ ځاى څو کمزورۍ او نيمګړتياوې به هم نۀ وې.
خو دلته بله يوه خبره هم شته او هغه دا چې اولسي شاعرانو نه علاوه نورو شاعرانو ډېر نظمونه داسې هم ليکلي دي چې هغه مربع ، مُخمس او مُسدس نه لرې جُدا دي او مطلع ده ورسره ، او دا نمونه چاربيتې هم شته ، دا نظمونه دَ تکنيک ، محاسنو او خيال پۀ حواله سره ډېرې اعلى نمونې دي. ځېنې پکښې نظرياتي او فلسفيانه رنګ هم لري.
کۀ چرې مونږه دغه ټول نظمونه چاربېتې حساب کړو نو بيا خو به چاربيته نوره هم ډېره معياري او شته منه او قوي شي ، ورسره به دا ګيله هم ورکه شي چې ګنې اولسي شاعرانو نه آخوا نور شاعران چاربېته ليکي نه او يا چا هډو ليکلې نۀ ده ، او دا کار به هم ؤشي چې د دغه نظمونو پۀ واسطه به دغه نوې دور کښې چاربېتې ليکلو ته لا زيات پام ؤشي.

# دَ شعر او چاربېتې پهٔ اړه څو بنيادي او ضروري خبرې

چاربيته کښې عموماً چُستي او رواني ډېره وي ، چاربيته ډېر قسمونه لري خو دَ تکنيک پهٔ حواله دا اکثر پهٔ دوه بحرونو او دوه وزنونو کښې هم ليکلے شي ، د جوړښت پهٔ حواله سره ئې هم ډېر قسمونه دي ، چاربيته کښې مونږ ته يو دَ بحر او وزن پهٔ حواله سره قسمونه پهٔ نظر راځي او بل طرف ته د بندونو او مصرعو دَ جوړ او شمېر پهٔ حواله سره نمونې پهٔ لاس راځي ، او د چاربيتې تقطيع به هم دَ څلور څلور سپلابونو دَ سېټ پهٔ ذريعه وي او دې کښې هم صرف څلور وزنونه دي ، بحرونه ئې زيات دي ، دَ 9 او13 سپلابونو بحرونه هم دَ چاربېتو بحرونه دي ، د ټپې دَ وړومبۍ او دوېمې مصرعې نه سېوا دا بل صنف کښې نشته ، نو پهٔ دا سوب وايم چې دَ چاربېتې پهٔ اړه دَ بحر او وزن قاعدې او قسمونو ته کتل دي او بل د بندونو او مصرعو حجم او شمېر ته .

د چاربيتې پهٔ تقطيع کښې هم دا خبره د ياد ساتلو ده چې اکثر دَ يو وزن او بحر پهٔ مصرعو کښې چرته چې يو سپلاب کم ؤليدے شي خو چې غور ؤکړے شي ، نو هلته پهٔ آخري درونډ سپلاب زور زيات شوے وي ، دا زيات زور يا طُول د يو سپلاب کمے پوره کوي او دا به پوره حسابېږي ، دَ تقطيع د پاره دَ څلور څلور سپلابونو سېټ جوړؤل او بيا کتل چې درونډ سپلاب کوم يو دے ، دا مونږ ته وزن ښائي او بحر هم. زنځيرى، نيمکۍ ، کړه بند او سوره ټولو چاربېتو کښې دَ څلور څلور سپلابونو سېټ جوړېږي ، او هر سېټ کښې يو يو سپلاب درونډ وي ، دغه ټولو کښې يو دوه چاربېتې مختلفې دي چې پکښې يو ستاري ده او دا پهٔ وزن د رباعي ده ، دَ دې تقطيع پهٔ څلور څلور سپلابه سېټ هم ده او پهٔ اووهٔ اووهٔ سپلابه سېټ هم ده. دا پهٔ څلورم وزن کښې ده او مصرعه دوه دوه ټوټو کښې ، د اووهٔ اووهٔ يعنې دَ څوارلس سپلابونو وي چې څلورم سپلاب درونډ شي نو بيا صرف يو درونډ سپلاب راتلے شي دغه ټوټه بحر کښې ، خو دې لهٔ چې مونږ د اووهٔ اووهٔ سپلابه سېټ مخصوص کړو نو دا زياته صحيح ده او بله هغه چاربېته ده چې دَ هغې پهٔ تقطيع کښې دَ بحر سېټ دَ درې درې سپلابونو دے .

# دَ عام نظم او چاربېتي تر مېنځه بیلتون

(دویم لیک)

زمونږ دَ پښتو شاعرۍ کښې څۀ نظمونه دَ مُربع ، مُخمس ، مُسدس ، مُسبع ، مُسمن، مُتسع او معشر ( مُسمط ) غوندې دي څۀ خو داسې دي چې ځانله ځانله څلور څلور مصرعې بندونه دي ، اکثر خو سرونه یعنې مطلعې هم لري زمونږ دَ اولسي شاعرۍ دا مقبول عام چاربېته صنف هم دغه ډول دے ( بندونه بندونه او سر والا ) لکه دا ټول دَ پښتو خپل مُسمط یو نظام دے. چاربېته پۀ خپل اولسي لب و لهجه او دا لاندې څو نخښو یا نکتو باندې ځانله خپل شناخت جوړوي.

دَ چاربېتې څو غټې غټې نخښې

1- دې کښې چُستي او رواني ډېره وي.

2- دَ دې سر یعنې مطلع اکثر قسمونو کښې دوه بحرونو او وزنونو کښې وي ، کله خو صرف بحر جدا وي او کله ورسره وزن هم بدل وي او هم دا صورتِحال پۀ نورو نظمونو کښې نشته. نور نظمونه کۀ چرې مطلع هم لري خو ټول پۀ یو بحر او وزن کښې وي چرته یو قسم دوه کښې کۀ یو ټکړه اضافه کېږي هم خو بیا هم ترتیب او وزن یو شان راروان وي.

3- څېنې چاربېتو کښې دَ بند آخري دَ جوړ مصرعه چې سَر سره هَم قافیه کولې شي نو دغه مصرعه دَ مطلعې دَ وړومبۍ مصرعې سره هَم قافیه کېږي ، پۀ عام نظم کښې داسې حال دے ، چې کۀ مطلع کښې دواړه مصرعې هَم قافیه نۀ وي نو بندونو کښې آخري دَ جوړ مصرعه دَ نظم دَ مطلعې دَ دویمې مصرعې سره هَم قافیه کېږي ، خو چاربېته کښې اول سر مصرعې سره .

4- څۀ چاربېتو کښې د 9،6 او 13 سېلابونو مصرعې هم وي خو عامو نظمونو کښې دا بحرونه نشته .

# دَ عام نظم او چاربېتې تر مېنځه بيلتون

(دويم ليک)

5- اکثر چاربېتو کښې مطلع او بندونو او جوړونو کښې دَ مصرعو آخري دروند سېلاب پهٔ داسې طريقه سره بحر کښې راوړے شي چې زيات زور او طُول واخلي ، او دغه ځای چې مونږ ؤګورو نو ټول حرکتونه دَ "الف" "واو" او "ئې" وي شايد دا ډول چاربېتې پهٔ ترنم او يا يو خاص طرز وئيلے او ليکلے شي . او دا کار ارادي طور کېږي د دغه زيات زور او طول دَ پاره پهٔ مصرعو کښې يو سېلاب کم پرېښودے شي ، او دا سېلاب پهٔ دغه زور او طول پوره کؤلے شي . دې دَ پاره ټوله مصرعه کښې دَ حرکتونو او زور ، ترتيب دَ شروع نه پهٔ داسې طريقه کؤلے شي چې آخر ته دا مُدعا پوره شي .

6- څهٔ چاربېتو کښې دَ سر مصرعې اکثر هَم قافيه نهٔ وي ، خو بندونو کښې آخر ته دَ جوړ مصرعې دوه دوه راوړے شي . دا دوه مصرعې دَ سر دواړه مصرعو سره بېلې بېلې هم قافيه کړے شي . دا کار هم نورو نظمونو کښې نشته .

دَ 9, 6 او 13 سېلابونو بحرونه خو دَ چاربېتې ځانګړي بحرونه دي او دې کښې خو نورو نخښنو يا نکتو ته ضرورت نهٔ پېښېږي خو دَ 14,12,11 او 15 سېلابونو بحرونو چاربېتې دغه بيان شوو نورو نخښنو يا نکتو کښې کومه يو ضرور لري (4 نمبر نه علاوه ) او هم پهٔ دې بنياد دغه ډول نظمونو نه ځان بېلوي. نور هېڅ بېلتون نهٔ لري دې کښې دَ آهنګ هېڅ کردار نشته ، پهٔ کوم څو بحرونو او وزنونو کښې چې دا چاربېتې ليکلے شوې دي نو دغه ته آهنګ وئيل يوه غټه غلطي ده ځکه چې دا وزنونه او بحرونه دي او پهٔ دغه بحرونو او وزنونو کښې نظمونه او غزلونه هم شته دے .

# دَ عام نظم او چاربېتې تر مېنځه بیلتون

(دویم لیک)

اوس کۀ موسېقارانو دغه چاربېتـــو لۀ مخصوص طرزونه جوړ کړي دي نو هم پۀ دې طرزونو کښې کښې دَ دغه بحر او وزن نظمونو او غزلـونه هم وئیلے کېدے شي . هم دغه رنګې کۀ دَ وړاندې نه دغه بحر وزن والا نظمونه او غزلونه چا سندر غړې پۀ کوم طرز کښې دَ ساز سره وئیلې وي نو پۀ دا طرز کښې دا واړه چاربېتــې هم وئیلے کېدے شي کۀ دغه بحر او وزن او دَ موسیقی طرز له چا دَچاربېتې دَ آهنګ نوم ورکړو نـو یو نوې مسئله به سر را اوچت کړي یعنې دغه نظمونو او غزلونــو ته بیا څۀ نوم ورکولے شي ؟. دا کله هم دَ آهنګ کردار نۀ دے.

زما دَ دغه څو خبرو دَ پاره دَ چاربېتو ، نظمونو او غزلونو دا څو نمونې ؤګورئ .

# دَ عام نظم او چاربېتې تر مېنځه بيلتون

(دويم ليک)

هغه چاربېتې ، نظمونه او غزلونه چې سره خپله کښې يو بحرونه او وزنونه لري ، خپل هئيت او وضع په نورو نخښو او نکتو کښې بيله ساتي .

دَ 11 سېلابونو چاربېتې ،نظمونه او غزلونه چې په څلورم وزن کښې دي .

چاربېته

شين آتشين لوګے مې خېژي لۀ خولې
بېلتون مې زړۀ زړۀ پورې انګار نيولے
لکه بُلبل درپسې کـرم واوېلې
جُخت مې پۀ تا پسې رېبار نيولے

درېيزه

چا راته وې چې دَ سپرلي ورځو کښې
هغه تر لرې ګـرځي ساکـو پسې
څکه پتـې کښې مې شـرشم ؤکرل

غزل

داسې مې رېږي دَ آرمان ګلونه
لکه چې وي دَ بيـابان ګلونه
پۀ اننګو کښې کُتې جوړې لره
بنۀ دي هم دغسې خندان ګلونه

د توړلو تفطيع

11 = 3 ، 2 ، 1 + 4 ، 3 ، 2 ، 1 + 4 ، 3 ، 2 ، 1

# دَ عام نظم او چاربېتې تر مېنځه بيلتون

(دويم ليک)

دَ 12 سېلابونو دريم وزن نمونې:

( احمد دين طالب )

چاربېته

دَ ګبين نه دي شيـــرين دَ مخ عرق دے
دَ نباتـــو نه دي عدم کړۀ قنــــدونه
چې ليدلے مې شاه ستا دَ مخ ورَق دے
دَ زړګي پرهـــر مې نا اخلي پېوندونه

( سر )

نظم

لۀ وجــوده ئې دَ ګُل خــواني لوګے شه
دَ چمن ســـروې ئې خار شه تـــر قامته
خلاند مخ نه ئې سپوږمۍ هم حيا کاندي
ګـــورو زلفـــو ته ئې شپه ده ملامته

غزل

ستا چې بل پۀ لر او بر دَ بيلتون اور دے
بيا کابل او پېښـــور پۀ لوګـــو تور دے
دَ جهان ، کۀ دَ جانان ، کۀ مې دَ ځان دے
هـــر يو غم زما دَ ژوند پۀ اوږو سور دے

د ټولو تقطيع

12 = 4 ، 3 ، 2 ، 1 + 4 ، 3 ، 2 ، 1 + 4 ، 3 ، 2 ، 1

12 = | ‖ | | + | ‖ | | + | ‖ | |

# دَ عام نظم او چاربېتې تر مېنځه بیلتون

(دویم لیک)

دَ 14 او 15 سېلابونو (ورومبے وزن) نمونې :

## چاربېتې

(I)

زلفــې دې جوړې کړې غړې لکـــه ماران دي
خورې پهٔ سینه تال چې چې دَ شمال بادِ نسیم شي

14 سېلابونه
ورومبے وزن

(II)

نهٔ کوي صرفه زما دَ زړهٔ پهٔ غوڅولو کښې
وګوره نا ترسې چې ئې څومره ترازې دینه

15 سېلابونه
ورومبے وزن

## نظمونه

(I)

ځار شمـــه دَ تانه تهٔ زما پښتـــونستان ئې
تهٔ مې دَ نېکونو دَ غېرت او تنګ نښان ئې

14 سېلابونه
ورومبے وزن

(II)

اے زما وطنه ! دَ لالـونـــو خزانې زما
ستا هره دره کښې دي دَ ګورو نښانې زما

15 سېلابونه
ورومبے وزن

## غزلونه

(I)

اے دَ زړهٔ سلطانه ! تهٔ دَ زړهٔ سلطـان دَ چا ئې
ستا رنځوران ډېر دي وایه تهٔ درمان دَ چا ئې

14 سېلابونه
ورومبے وزن

# دَ عام نظم او چاربېتي تر منځه بيلتون

(دويم ليک)

(II)

څۀ به دا ژوندن وي چې بې ياره بې ديــــاره وي
څوک خو چې ژوندي وي نو هم دغه څۀ دَ پاره وي

15 سېلابونه
ورومبے وزن

## تقطيع

(I) - 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2 = 14

(II) - 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3 = 15

# دَ چاربېتې قسمونه (Classification)

( دَ لیک دریمه برخه )

د چاربېتې ډېر قسمونه دي ، دلته به دَ هغه قسمونو ذکر اوکړم چې واضحه بېلګوټ لري، دَ دغه قسمونو نور ذېلي قسمونه هم شته خو دا ټول به زهٔ پهٔ ټولګو (کلاسونو) ؤویشم نو پوهېدل به پرې آسان شي ، دا ټولګي (کلاسونه) به مونږ څخه شپږ راځي څهٔ چاربېتې دَ بحر او وزن دَ قاعدې حواله سره خپله وضع بیلوي. څهٔ دَ سر او دَ بندونو د حجم او ساخت پهٔ بنیاد بیلګوټ لري او څهٔ چاربېتې د سر یعنـــــې مطلعې سره د بندونو دَ تعلق ، قـفیــو او جوړونــــو دَ طرز پهٔ حساب ځانګړتیــــا لري . یو قسم د چاربېتــې داسې هم دے چې هغه ســـر یعنې مطلع نهٔ لري او ټوله بندونه بنـــدونه وي ، څهٔ چاربېتــو ته نـــومونه ورکړے شوې دي او څهٔ ته نه . دغه ورکړے شوي نومونو کښې اکثـــر موضوعاتي ښکاري خو دغه مونږ دَ چاربېتې پهٔ قسمونو کښې نهٔ شو شمرلے . پهٔ موضوع باندې دَ شعر دَ یو صنف هئیت او وضع نهٔ بدلېــږي ، دې دَ پاره نور څهٔ لوازمات پکارېږي .
دغه قسمونو کښې یو چاربېته زنځیرې ده ، او دغه چاربېته کښـــې ډېر قسمـونه دي یو قسم بله چاربېته هم شته چې لږ غوندې بدلون لري نـوره ټوله زنځیرې ده ، پهٔ دغه وجه به دې ته دَ زنځیـــرې ټولګے ( کلاس ) ؤوایم او وروميے دا بیان ؤکړم.

زنځیرې چاربېته کښې یوه ټوټه ( نیمه مصرعه ) د 7 سپلابونو وي ( کله 6 هم وي ) دې پسې بله یوه ټوټه وي هغه بحـــر او وزن کښـــې وي. دې دواړه کښـــــې یو یو لفــــظ ( بیل بیل ) پهٔ طور دَ قافیه نیؤلے شوے وي( ورستو دَ بند کړو دَ پاره) دغه دوه ټوټـو پسې بیا بله پوره مصرعه وي ، هم دغه وزن کښې وي خو بحر کښې د 14 چپـــو وي ( کله 15 هم شي ) دغه پوره مصرعې پسې بیا بله پوه ټوټه وي دغه پوره مصرعې سره هم قافیه وي .

# دَ چاربېتې قسمونه

دَلیک دریمه برخه

دا توته په بحر کښې د هغه وړومبی توتو هومره وي . دَ بندونو دَ جوړونې دَ پـاره او صحیح پوهېدنې دَ پاره به دا سر یعنې مطلع درې برخو کښې وېشو. وړومبی توته به اوله برخه کړو. دویمه توته به دویمه برخه کـړو او دریمه پوره مصرعه او ورسره هَم قافیه توته به دواړه یو برخه یعنې دریمه برخه کړو.

په دغه زنځیری چاربېتو کښې بندونه او دَ بندونو کړې دَ دغه سـر دَ دې درې واړو برخو په لحاظ جوړولے شي یعنې په بند کښې اول کَړه کښې وړومبے دَ سر دَ توتـو هومره دوه توتې راوړے شي او دا توتې دَ بند په هره کَړه کښې هَم قافیه وي، بیـا دَ سر دَ پـوره مصرعې هومره یو مصرعه راوړے شي او دَ سـر دَ وړومبی بـرخې (توتې) سره هم قافیه کړے شي . دَ سر هغه وړومبی توته هم ورسـره تکرار دَ پاره راوړے شي . دغسـې بیا دویمه کَړه دَ سـر دَ دوېمې برخې(توتې ) دَ پاره تیـاره شي او بیا دریمه کړه دَ سر دَ درېمې برخې(پوره مصرعه) دَ پاره سازه شي خو دلته ورسره هغه آخري توته تکرار شي ځکه چې سـر کښې هغه پوره مصرعه او دا توته هَم قافیه وې او یو برخه حساب شوې.

په بندونـــو کښې دَ کَړو دَ پـــوره مصرعې نه وړومبی توتـې کله کله درې درې راوړے شي نو دا بیله زنځیری شي. بیا دې کښې کله دا کَړې برغـې راوړے شي یعنــې دَ بند دَ درې کَړو په ځای شپـږ کَړې راوړے شي دغه اضافي کَړې په بند کښـې ځانله ځانله تـوتې لري او دَ سر سره هَم قافیـــه بند والا کَـړو نه اول یو یو راوړے شــي ، دا هم یو قسـم دے.

# دَ چاربېتې قسمونه

( دَلیک دریمه برخه )

دغه تولګي ( کلاس ) کښې يو هغه قسم چاربيتې هم شاملوو کومې چې پۀ سر او بندونو کښې تر ډېره حده دَ زنځيرۍ سره ملاوېږي ، خو لږ بدلون هم لري. دې ته نوم نۀ دے ورکړے شوے. دَ دې سر کښې وړومبۍ دوه توټې دواړه يو قافيه کښې وي او دې دواړو ته بندونو کښې صرف يو کړه راوړے شي. بيا پسې د سر لوېې مصرعې دَ پاره کړه سازه کړے شي خو دواړو ته اول يو کړه وي . دغه دَ بند پۀ سر کښې وړومبۍ کړه آزاده وي او ځانله دَ خپلې توټې سره هَم قافيه وي . دغسې دې تولګي( کلاس ) کښې د زنځېرۍ ځۀ څلور قسمونه راغلۀ. دې نه علاوه يو بل قسم هم شته ، هغې کښې دَ بند دريمه يعنې آخري کَړه دَ سر دَ دريمې برخې سره هَم قافيه وي او نورې کَړې واړه دَ سر توټو سره هَم قافيه نۀ وي .

دويم تولګي ( کلاس ) کښې به ستاري او يو بله چاربېته( دَ احمد دين طالب ) حساب کړو. دا وخت دې تولګي کښې دا دوه چاربېتې دي چې بېخي ځانله ځانله جُدا دَ بحر او وزن طور طريقه لري يعنې دَ بحر دَ تقطيع قاعده ئې جُدا ده . عامه نۀ ده. دَ دغه چاربېتو خپل نور ډېر قسمونه هم جوړېدے شي او کۀ داسې يو چاربېته پۀ لاس راشي چې دَ هغې دَ بحر او وزن دَ تقطيع قاعده عامه نۀ وي نو هغې دَ پاره هم دا تولګے خاص دے . دغه ستاري نوم کۀ څۀ هم هئيتي نۀ ښکاري. دغه ډول چاربېتو کښې څه پرده او ستر شان وي نو کېدے شي دا نوم ئې ورته پۀ دا سوب ورکړے وي خو خبره صرف دَ ستر او پردې نۀ ده ځکه چې دا ډول کومې چاربېتې دي نو دَ دې دَ بحر دَ تقطيع قاعده بېخي ځانله ده. وزن خو ځلورم دے ، او پښتو کښې ځلورم سېلاب نه وړاندې زور يا دروند والے نۀ شي انتقال کېدے ، خو دا وزن هم دَ دغه بحر دَ دَ منفرد سبېونو لۀ سوبه بدل ښکاري ، نور وزن ځلورم دے .

# دَ چاربېتۍ قسمونه

( دَلېک دریمه برخه )

دا چاربېتۍ پهٔ تېوته تېوته کښې بحر کښې دي. هره تېوته کښې يو سېلاب (څلورم) دروند دے. دا بحر او طرز دَ رباعي دے.

هر سېټ دَ 7 سېلابونو وي، دَ بحر دَ سېټونو دغه شکل دَ نورو ټولو چاربېتو نه جُدا دے. هم دغسې دَ احمد دين طالب يو چاربېته چې نوم خو نۀ لري نو هغه هم دَ بحر دَ سېټ يو جُدا او ناوياته وضع لري يعنې دَ درې درې سېلابونو سېټ دے او هر دريم سېلاب دروند دے. دَ وئيلو ئې يو جُدا انداز جوړيږي. دَ نمونو او تقطيع پهٔ لېک (څلورم لېک) کښې به راشي. دا دواړه چاربېتې پهٔ سر(مطلع) او بندونو کښې دَ شپږم ټولګي پهٔ طرز دي خو دَ بحر او وزن دَ تقطيع او سېټونو پهٔ حواله جُدا دي. دَ يو چاربېتې سېټ دَ اووه سېلابونو او دَ بلې چاربېتې سېټ دَ درې سېلابونو دے. دغه ټولګي نه آخوا دَ نورو واړه ټولګو چاربېتې دَ 4 سېلابونو سېټ والا دي.

دَ نيمګړي ټولګي چاربېتو کښې دَ بحر او وزن قاعده يا تقطيع هم دغه ده خو هلته صرف دا مسئله ده چې يو چاربېته کښې بحر او وزن بدل شي.

# دَ چاربېتې قسمونه

( دَلیک دریمه برخه )

دریم ټولګي (کلاس) کښې نیمکۍ چاربېتــې دي ، دا چاربېتي هم واضحه خدوخال لري . سر کښې او بندونو کښې دَ مصرعو سره نیمې نیمــې ټوټې لري او هم په دا وجه ورته نیمکۍ چاربېته وائي نیمکــــۍ دَ اولســـي شاعــرۍ یو بیل شعــري صنف دے . دا ډول چاربېتـــې په دوه دوه بحــرونــو او وزنونـــو کښــې هم وي او مختلف ترکیبونو په وجه پکښې دوه درې قسمونه دي . نیمکۍ چاربېتــې . نیمکۍ . بګټۍ ، لوبه او سندره کومه چې اوسني څۀ شاعران دَ دغه ذکر شوو صنفونو په ډول لیکــي او یو بیل صنف ئې بولي ، دا واړه دَ پښتو خپل دَ مُستزاد نظمونو یو لویه حلقه ده.

څلورم ټولګي (کلاس) کښــې سوَره چاربېته او کَړه بند چاربېته دي. دا دواړه تــــر ډېـــره حده مماثلت لري. داسې نورې هم څو چاربېتې شته چې هغه هم دَ دغه ټولګي څخه دي سوَره چاربېته کښې سر څلور مصرعې وي، جوړه جوړه هَم قافیـــــه وي، یو بحــر او یــو وزن کښې وي بندونو کښې آخر ته دَ سر سره دَ جوړ مصرعــې صرف دوه راوړے شي دغه دوه دَ جوړ مصرعــو کښې یو دَ چاربېتـــې دَ سر دَ وړومبۍ جوړې سره هَم قافیه کړے شي او بله دَ سر دَ دوېمې جوړې سره هَم قافیه کړے شي .
کَړه بند چاربېته کښې هم سر کښې څلور مصرعې وي خو دَ دې بندونو کښې هم ټولې مصرعې جوړه جوړه او کَړه کَړه سره خپلو کښې هم قافیـــه وي ، دا دواړه ســره دَ دغه ېډول نورو ډېرو چاربېتو دَ دغه څلورم ټولګي (کلاس) چاربېتې دي.

پېنځم ټولګے (کلاس) دَ هغه مختلف چاربېتو دے چې دَ هغــې متعلق لا تعین پاتــې دے ، دې ته به متنازعه ټولګے ؤوایو ، دې ټولګي کښــې یو هغه چاربېتـــې دي چې شروع نه بندونه بندونه وي او سر یعنې مطلع نۀ لري او دویم پکښـــې هغه چاربېتـــې دي چې بندونو کښې ئې دوه مصرعې وي دې مصرعو سره ټــوټې هم وي خــو بیا هم متنازعه دي دا ټولې هم دې ټولي کښې ګډ نبۀ دي.

# دَ چاربېتې قسمونه

( دَلیک دریمه برخه )

شپږم ټولګے ( کلاس ) دَ بــــــــر لوي دے ، دغه ټولګي( کلاس )کښې چاربېتــې سر کښــې دوه مصرعې لري يو وزن او يو بحر کښې وي څهٔ هَم قافيه مصرعې وي او څهٔ خپله کښې هَم قافيــه نهٔ وي . اکثــر هغه دي چې زمونږ دَ عامـو نظمونو وضع لري هغه نظمونه کوم چـې دَ مُسمّط نظمونـو پهٔ ډول دي . خو زمونږ هغه نظمــونه ســرونه يعنې مطلعــې لري دغه ټولګي( کلاس ) کښــې يو خـــو هغه چاربېتـــې دي چې صرف چُستــي او رواني لري خو نور څهٔ خاص بيلتون نهٔ لري او دا چُستي او رواني دَ دغه ډول پهٔ څهٔ ډېر نظمونو کښې پهٔ نظر راځي .

بل هغه چاربېتې دي چې دَ سر دَ مصرعو سره سره دَ بندونو دَ مصرعو پهٔ بحر کښې يو سېلاب کم لري او آخري دروند سېلاب باندې زيات زور او طول والا ځانګړتيا هم لري دغه ټول قسمونه يو کلاس دے .

دَ ټولګو (کلاسونو ) پهٔ شکل کښې دَ چاربېتو دَ قسمونـــــو دا کـــار تر ډېره حده راغونډ ښکاري پهٔ بل صورت کښــې دا کار ســر ته نهٔ رسي ، دا خو شپږ ټولګي ( کلاســونه ) شو خو حتمي به ئې بيا هم ؤنه ګڼـو او کهٔ نور څهٔ لاس له راتلهٔ او بېخي بدلون ئې لرلو نو بل ټولګے ( کلاس ) جوړول هم ګران نهٔ دي. خــو دا امکـــــان دَ نېشت برابر دے او دا وخت هم دومره دي او کهٔ دغه ټولګو کښې دَ يو ټولګي مماثل کومه پاتې چاربېته پهٔ لاس راځي نو هغه به هم خپل ټولګي کښې ؤشمارلے شي يعنــې دَ هغه ټولګي يو قسم به سېوا شي ، نوره خبره پوره ده .

نوټ: دَ تپکبـــــدار پهٔ کتاب چې همېش خليل صاحب چې کــوم ليک کړے دے او هغې کښې ئې دَ "دَ پښتــــونخـــوا هارو بهار" کتاب يعنې جېمز ډار مستېټر پهٔ حــواله کومې چاربېتې او قسمـــــونه بيان کړي دي نو هغه ټولې پهٔ دغه څهٔ ټولګو ( کلاسونــو ) کښې شامل دي .

# دَ چاربېتو دَ ټولکو (کلاسونو) نه څو نمونې او د ځېنې تقطيع

د ليک ځلورمه برخه

ورومبي ټولګي نه يو زنځيرى :

ښکلے شال پۀ سـر زما (الف)
ښکلي پرې ګلـونه دي (ب)
ښکلے ښکلے خلک مې ديدن پسې شبکور دے (ج)
ښکلے تنګ تکور دے

---

ښکلے شـــال زرين لرم
ښکلے سپين جبين لرم
ښکلے يو پېزوان دے پۀ سرو شونـــډو مقرر زما
ښکلے شال پۀ سـر زما (الف)

ښکلې زۀ بـوسه ساتم
ښکلې دنـدا سه ساتم
ښکلې دَ مزې مې دواړه سرې شونډې لالونه دي
ښکلي پرې ګلـونه دي (ب)

ښکلې يم بـــاور ؤکړه
ماته لــږ نظـــــر ؤکړه
ښکلے مې اوربل دے الوَل پۀ وروځو خور دے
ښکلے تنګ تکور دے (ج)

يو بند پوره شو او دغسې نور بندونه لږ ډېر بدلون سره نور قسمونه .

# دَ چاربېتو دَ تولکو (کلاسونو) نه څو نمونې او د څېنې تقطيع

( د ليک څلورمه برخه )

تقطيع :

ښکُ ، لې ، شال ، پهٔ + سر ، ز ، ما ، ؟ = 7 سپلابونه
1 سپټ — 2 سپټ

ښکُ ، لي ، پرې ، ګُ + لُو ، نه ، دي ، ؟ = 7 سپلابونه
1 سپټ — 2 سپټ

ښکُ ، لې ، ښکُ ، لې + خه ، لک ، مې ، دي + دن ، پَ ، سې ، شب + کور ، دے
1 سپټ — 2 سپټ — 3 سپټ — 4 سپټ سمګړے

= 14 سپلابونه

ښکُ ، لې ، ټنګ ، تَ + کور ، دے = 6 سپلابونه
1 سپټ — 2 سپټ

دا توته 7 يا 6 سپلابونه دلته څهٔ مسئله نه ده

اکثر برابر وي الف ، ب تولو سره

---

پهٔ هندسو کښې به داسې وي

(الف) 7 = 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2 ، 3

(ب) 7 = 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2 ، 3

14 = 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2 ، 3

(ج) 6 = 1 ، 2 ، 3 ، 4 + 1 ، 2

پهٔ هر سپټ کښې وړومبے وړومبے سپلاب دروند دے . او دا دَ دې وزن دے هم پهٔ دغه وزن کښې دَ دې چاربېتې دَ بند کړې تيارېږي .

# دَ چاربېتو دَ ټولکو (کلاسونو) نه څو نمونې او د ښېنې تقطيع

دلیک څلورمه پرخه

دويم ټولګے (رباعي وزن او بحر والا) (ستاري) :

دا دَ خيبر لۀ کانو — مورچې دَ جنګ لرې کا
يا دَ پښتون پۀ قانون — تورې نه زنګ لرې کا

مېچن ، ارټ او ګانې — زارۀ اوزار ورکېږي
ريکارډ دَ بل دَ باجې — ستا يکه زار ورکېږي
منګے رباب دَ حجرې — سره دَ چنګ لرې ک
يا دَ پښتون پۀ قانون — تورې نه زنګ لرې ک

---

او د غسې نور بندونه۔ هُم دَ دغه بندونو دَ ترکيب ،طرز او کړو دَ شمېر پۀ حواله نور دېر قسمونه دَ دغه ټولګي جوړېدے شي.

## تقطيع

دا ، دَ ، خيـ ، بـر ، لۀ ، کا ، نـو + مور ، چې ، دَ ، جنګ ، لۀ ، رې ، کا = 14 سپلابونه

1 سپټ — 2 سپټ

يـ ، دَ ، پښ ، تون ، پۀ ، قا ، نـون + تـو ، رې ، نه ، زنګ ، لۀ ، رې ، ک = 14 سپلابونه

1 سپب — 2 سپب

### پۀ هندسو کښې

1 ، 2 ، 3 ، 4 ، 5 ، 6 ، 7 + 1 ، 2 ، 3 ، 4 ، 5 ، 6 ، 7 = 14 سپلابونه

1 سپټ — 2 سپټ

### پۀ نخښو کښې تقطيع

|||‖||| + |||‖||| = 14 سپلابونه

هُم دغه وزن کښې دَ بند کړې دي ، دَ اووۀ سپلابونو سپټ او هر سپټ کښې څلورم سپلاب دروند دے .

# دَ چاربېتو دَ ټولګو (کلاسونو) نه څو نمونې او دَ څېنې تقطيع

دَ لیک څلورمه برخه

دويم ټولګې دويمه چاربېته (دَ احمد دين طالب):

سپين بشـــر دَ دلبـر دے سحر تازه = 11 سېلابونه
څوکېدار پرې بېدار زلفې مار زانګې = 11 سېلابونه

---

سپين رُخســـار دَ دلدار پرې بهار وي تل = 11 سېلابونه
دغه بــاغ دَ فــراغ دے دَ زاغ و زغــن = 12 سېلابونه
په دربـار څوکېــدار ما سردار کړه اول = 11 سېلابونه
غم چراغ زړهٔ سوړاغ نــاوري چاغ وچغن = 12 سېلابونه
زهٔ بيمــار دَ ګلــزار نــاقــرار يم بُلبل = 11 سېلابونه
دُور کړه کاغ تور کلاغ بر دماغ کړې ګُفتن = 12 سېلابونه

ما نوکــــر مُقـرر کــړه په دروازه
سپين بشـــر دَ دلبـر دے سحر تازه
څهٔ پکار چې دوبار کړې چغار بانګې
څوکېدار پرې بېدار زلفې مار زانګې

## تقطيع

سپين ، بَ ، شـــر + دَ ، دل ، بـــر + دے ، ـــــَ ، حر + تا ، زه
11 -

څـــو ، کــې ، دار + پرې ، بې ، دار + زل ، فې ، مار + زان ، ګې
11 -

### په هندسو کښې

1 ، 2 ، 3 + 1 ، 2 ، 3 + 1 ، 2 ، 3 + 1 ، 2
11 -

### په نخښو کښې تقطيع

||| + ||| + ||| + || = 11

# دَ چاربېتو دَ ټولګو (کلاسونو) نه څو نمونې او د ځينې تقطيع

د ليک ځلورمه برخه

دريم ټولګي نمونې (نيمګړې چاربېتې) :

خورې ورې دې زلفې پهٔ رخسار بنې شي
ورکوې دَ عطرو نم
بلبل وريسې تل سر پهٔ چغار بنې شي
زړهٔ مې شو قلم قلم

---

خورې ورې دې زلفې پهٔ شمال کړلې نن
خوشبوئې شوه قاف تر قافه
غنچې دَ باغيچې خزان پائمال کړلې نن
دَ ښائيست دې نهٔ کړې لافه
جرګې دَ عاشقانو دې بد حال کړلې نن
چې ښکاره شوې لهٔ غلافه
ځان ماته دَ منصور هسې پهٔ دار بنې شي
زړوې مې ستا ستم

---

## تقطيع

خو ، رې ، وَ ، رې + دې ، زل ، فې ، پهٔ + رخ ، سار ، بنې ، شي = 12 سيلابونه

ور ، ک ، وې ، دَ + عط ، رو ، نم = 7 سيلابونه

بل ، بل ، ور ، پ + سې ، تل ، سر ، پهٔ + چ ، غار ، بنې ، شي = 12 سيلابونه

زړهٔ ، مې ، شو ، ق + لم ، ق ، لم = 7 سيلابونه

تقطيع پهٔ نخښو کښې

|||| + |||| + |||| = 12 سيلابونه

||| + |||| = 7 سيلابونه

دَ دې چاربېتې دَ سر مصرعې او ورسره توتې بيل بيل وزن کښې دي .

# دَ چاربېتو دَ ټولګو ( کلاسونو ) نه څو نمونې او د څېنې تقطيع

دلیک څلورمه برخه

1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3 4 = 12 سېلابونه

1، 2، 3 ،4 + 1، 2، 3 = 7 سېلابونه

1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 + 1، 2، 3، 4 = 12 سېلابونه

1، 2، 3 ،4 + 1، 2، 3 = 7 سېلابونه

---

هم دغسې ورسره بیا بند کښې مصرعهٔ یو وزن (دویم) کښې او ټوټه بل وزن ( دریم) کښې دي ، دَ سر او دَ بند پوره مصرعې پهٔ اصل کښې دَ 13 سېلابونو دي ځکه چې آخري درونډ سېلاب زور او طُول زیات اخلي ، پهٔ دا سوب به دا موږ 13 او 7 حسابوُو وزن ئې ښکاره باره جُدا دے دغه ټولګي کښې دَ دغه چاربېتې سره پهٔ لړ ډېر ببلتون نورې هم څو چلربېتې دي ، لکه څهٔ کښې دَ سر یو مصرعه وي او یو ټوټه وي ورسره او څهٔ هغه دي چې یو سالمه مصرعه وي او دویمه ورسره پهٔ دوه ټوټو کښې مصرعه وي یعنې دویمه مصرعه ټوټه ټوټه وي

چرته چرته ئې وزن هُم جُدا وي لکه دا لاندې دَ دوه چلربېتو سرونه

1 ډاکه پهٔ کلي راغله لوډ سپیکر پکښې غږېږي
نن بیا چنده ټولېږي

---

2 دَ رزیلانـــو نه کهٔ "راشه" عزت غــواړې
ځانله مصیبت غواړې ، ورک شه بې شعوره

# دَ چاربېتو دَ ټولکو ( کلاسونو ) نه څو نمونې او د څپني تقطيع

( دلیک ځلورمه برخه )

دَ ځلورم ټولګي نمونې :

(سوره)

دَ غم عمـــر مې تېرېـــږي بې لۀ يـــاره ( سر )
يقين نۀ دے چې مې اوچ دَ سترګو نم شي
دَ مرض احـــوال مې ؤوايه رېبـــاره !
کۀ زما جانـــان زما ســـره همدم شي

دَ غم عمـــر مې تـر تېره صدى تېر کړو ( بند )
لا دَ پـــاسه پـــرې سپوا اوويشت کلونه
بېلتانه مُعاش زما زهـــر ، ګندېر کړو
دا تلخې مې نۀ لۀ خُلې ځـــي ، نۀ تالونه
کۀ هر څو مې صبر جال لۀ زړۀ چاپېر کړو
رانه غواړي ليلا! ستـــا زلفـــې ولونه

پۀ هېڅ رنګ به دي لاړ نۀ شم لۀ دربـــاره (جوړ)
کۀ مې ســـر دَ عاشقـــى پۀ تېغ قلم شي

---

کړه بند

ورېږي بم لکـــه باران پکښې ( سر )
ګرځي غازي افسر زمان پکښې
مينه پتنګ لري دَ نـــاره سره
خېژي لمبې دَ شاليمـــاره سره

# دَ چاربېتو دَ ټولګو ( کلاسونو ) نه څو نمونې او د څپنې تقطيع

د ليک څلورمه برخه

خېــژي لمبې ، دے ګــرځـهار پکښې
راځـــــي دَ توپــــو دَندُوکار پکښې
څوک دَ ټــوپک ســره ګرنېټ لګوي
څوک پهٔ مورچه کښې دانامېټ لګوي
چا اېښـــــې ګــوتې پهٔ مارتــــر باندې
بارېږي چليــــــږي پهٔ انتـــر باندې ( بند )

راغلهٔ ډوګره هندو ، سکان پکښې
وريږي بم لکه بـــــــاران پکښې
مومن ټکــر وهي کفـــــاره سره
خېژي لمبــې دَ شاليمـــاره سره (جوړ)

دغه ټولګي کښې هغه واړه چاربېتې شاملې دي کومې چې ســـر کښې څلور مصرعې لري او دا څلور واړه مصرعې يو بحر او وزن کښې وي ، ورســــره بندونه هم بيا دَ دغه سر مصرعو پهٔ بحر او وزن وي .

# دَ چاربېتو دَ ټولګو (کلاسونو) نه څو نمونې او د څېنې تقطيع

دليک څلورمه برخه

دَ پېنځم ټولګي نمونې:

( دوه کړېزه )

کله وي تيارۀ ، کله وي رڼا کله سيلۍ پکښې
کله وي ګلې پکښـــې ، کله وي بـــاران

---

کله وي وريځ ، کله پۀ ګلو کښې غُنچې وينم
کله بيم باجې وينم
کله وي ځنګل، کله غنم ، کله تيلۍ پکښې
کله وي ګلې پکښـــې ، کله وي بـــاران

---

( بندونه بندونه )

ورو ورو بهـر کړه مخ لۀ پانو ګُله
غم خو مُدام وي ، وصال کله کله
خداى دې شرې کړله پۀ شال بدله
دَ ډول سُـرنا غـــرېـدو شپه ده
دَ نـوې ژوند دَ جوړېـدو شپه ده

دوه کړېزې ته متنازعه ځکه وايم چې دَ چاربېتې پۀ بند کښې دوه کړې کافي نۀ دي او دَ بندونو دا کۀ نوره ټوله هم دَ چاربېتې شکل ده خو چاربېته کښې دَ سر يعنې مطلعې اهم کردار وي - دَ وزن ، بحر او قسم پۀ حواله سره ۰

# دَ چاربېتو دَ ټولګو ( کلاسونو ) نه څو نمونې او د څېنې تقطيع

د ليک څلورمه برخه

دَ شپږم ټولګي نمونې :

(I)

نۀ کوي صرفه زما دَ زړۀ پۀ غوځولو کښې
وګوره ناترسې چې ئې څومره ترازې دينه

نۀ کوي نظر ، نظر مې نۀ لګي شمکور يمه
شمع دَ سپين مخ کۀ مخامخ لۀ رنګ محاله کړې
تور کښې دې دَ تورو سترګو تور بورا نه تور شومه
سره غُنچه دَ سرو ګلو به کله انعام ماله کړې
قېس پۀ شان رسوا پۀ قام کښې قاف تر قافه چور شومه
تۀ به حيا شرم لا تر کومه لۀ شغاله کړې
څارې دې ګلونه ، ګلعذار ئې پۀ خندلو کښې
نۀ کوي صرفه زما دَ زړۀ پۀ غوځولو کښې
څکه دې شيرينې دواړه کوکې خربوزې دينه
وګوره ناترسې چې ئې څومره ترازې دينه

بله دا يو چاربېته۔

(II)

شپه دَ عاشقو پۀ صحرا خوښه ده
هم ئې شوګير، هم ئې ژړا خوښه ده

يا لکه دَ احمد دين طالب دا چاربېته۔

هغه دم زما دَ زړۀ صبر تمام لاړو
مرور چې مې لۀ غېږې دل آرام لاړو

دغه سرونو پسې بندونه دَ څېنو چاربېتو لوی او دَ څېنو چاربېتو دَ 4 مصرعو دي۔

